# دَ مضمونو فهرست

بسم الله الرحمن الرحیم

ثنا او صفت هغه الله تعالیٰ لره دی چه واحد بے نیازه او قادر دے مالک صاحب جلال او تل ژوندے دے، خالق دے دَ مخلوق روزی رسان دے او په زړونو عالم دے او دَ اسمان او دَ روښانه ستورو پیدا کوونکے دے. په غیب او په راز عالم او پوهیدونکے دے. په ظاهر او په باطن عالم دے او اول او آخر دے.

نزول دَ رحمت دِے وی په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندے چه دَ ټولو پیغمبرانو سردار او فخر کوونکے دے.

ابو الفضل حسین بن ابراهیم محمد تفلیسی دا رنګے بیان کوی چه زهٔ کله دَ کتاب صحة الابدان دَ تصنیف نه فارغ شومه نو ما دَ تعبیر په اصل کتابونو باندے نظر واچولو کوم چه خلکو جوړ کړی وو. ماته دے کتابونو کښے یو هم واضح او جامع ښکاره نهٔ شو چه په هغې کښے دَ دے علم دَ استاذانو په اقوالو سره دَ هر خوب معنی دَ دلیل او دَ مسند سره بیان دی او دَ یو خوب دَ ویستلو طریقه دَ حروف تهجی په ترتیب سره مشرح او نمبروار وی نو چه کله دا رنګے یو فائده مند کتاب ملاؤ نشونو په دے باره کښے م کوشش وکړو او تکلیف م برداشت کړو او دا کتاب م جوړ کړو.

او صحت دَ دے کتاب کتل دَ همایون بادشاه چه لوے بادشاه دَ شاهانو دَ عربو او عجمو دے کړے دے او خاوند دَ اُمتونو دَ رقابو دے او عزتمند دَ دُنیا دے او فریاد اوریدونکے دَ مجاهدینو دے او وژونکے دَ مشرکانو دے بادشاه دَ روم او دَ دمشق او دَ شام دے او دَ فرنګ دے. نوم ئے ابو الفتح قزل ارسلان محوی دَ مسعود ناصر امیر دَ مومنانو دے. خدائے دے ورته عمر اُوږد کړی او دَ دهٔ بقاء دے هم اُوږده کړی.

دَ معجم حروفو په طرز او طریقه خوبونه په فارسئ ژبه م راجمع کړل له هغه کتابونو نه چه په دے پاک علم کښے مشهور دی له کتاب وصول دانیالؑ او له کتاب تقسیم امام جعفر صادقؒ او له جامع کتاب محمد بن سیرینؒ او له کتاب دستور ابراهیم کرمانیؒ او له کتاب ارشاد جابر مغربی او له کتاب کتاب تعبیر اسماعیل ابن اشعث او له کتاب کنز الرؤیائی او له کتاب بیان التعبیر دستور روس او له کتاب تعبیر حافظ ابن اسحاق او له کتاب حمل الدلایل والمناماتٔ او له کتاب

مبادی التعبیر او له ایضاح التعبیر فخری او له کتاب کافی الرؤیا او له کتاب تعبیر بطاؤس اوله کتاب مفرح الرؤیا او له کتاب تحفة الملوك منهاج التعبیر خالد اصفهانی او له کتاب مستقدمة التعبیر او له کتاب حقایق الرؤیا اوله کتاب وجین محمد بن شاهوید اوله کتابونو متفرقو نه هرچا دَ کلیمو نه چه په دے علم کښے تصنیف کړی دی دا ہم ورنه غوره کړو او بیا ہم ورنه جوړ کړو.

دَ ترتیب طریقه ، دَ هرخوب ترتیب دَ اول حرف په ترتیب دَ دویم اودریم حرف وا ضحه په دے کتاب کښے ہم ذکر کړی دی او دَ دے نوم ہم کامل التعبیر کیښودو ځکه چه بل دَ دے نه کوم کتاب په فارسی ژبه کښے نهٔ دے جوړ شوے او دا انصاف دے چه دَ دے احتیاج هرچاته شته دے.

اوله د غهٔ لومړنو استاذانو دَ اقوالو نه ہم دَ شپږو کسانو ذکر کړے دے چه هر یو په خپله زمانه کښے بخپله یوحکیم دَ وخت وو اودا په لاندې ډول دی : اول حضرت دانیالؑ حکیم چه دَ یو پاک نسب خاوند وو. دوئم امام جعفر صادقؓ دریم محمد بن سیرینؒ څلورم جابر مغربیؒ پنځم ابراهیم کرمانیؒ شپږم اسماعیل بن اشعثؒ.

او په پنځلسو فصلونو کښے ہم راوړی دی او هر یو شے ہم پکښے په خپل ځائے کښے په ترتیب ایښے دے دَ دے دَ پاره چه په لوستونکی او زده کوونکی اسانه شی او هره یوه باریکی ورنه پټه پاتے نشی. که دَ خدائے رضاوی الله تعالیٰ بنده پوهیږی په حقائقو باندے.

اول فصل دَ رد مزاج او طبیعت په پیژندلو دَ خوب کښے دوئم فصل دے په بیان دَ خوبونو په قسمونو پیژندلو کښے دریم فصل دے دَ روح اونفس په بیان کښے څلورم فصل دے دَ خوبونو په صحیح والی کښے پنځم فصل دے په بیان دَ رښتیا او دروغ خوبونو پیژندلو کښے اوشپږم فصل دے په بیان دَ خوبونو دَ فرق په پیژندلو کښے اووم فصل دے دَ خوبونو په میاشتو کښے فرق اتم فصل دے په بیان دَ فال او جفر علم پیژندل نهم فصل دے دَ یاده وتلی (هیرشوی) خوبونو پیژندلو په باره کښے لسم فصل دے جاهلانو ته دَ خوب تعبیر په بیانولو کښے یوولسم فصل دے دَ خوبونو حال، وخت، قسم او صورت نه معرفت حاصلول دولسم فصل دے په بیان دَ خوب تعبیر ویستونکی دَ ادب او معنیٰ او شرط په باره کښے دیارلسم فصل دے په بیان دَ ادب لحاظ ساتلو دَ تعبیر کوونکی او سوال کوونکی

۴ او هغه ارنګه هو نبي یوسف ؑ ته په مصر کښے عزت ورکړے دے او د خوبونو تعبیر هم ورته ښودلے دے ۱۲

په بیان کښې قسمونه څوارلسم فصل دے په بیان دَ پیژندلو دَ دے کښې چه تعبیر په څو قِسمه دے پنځلسم فصل دے په بیان دَ پیژندلو دَ هغه مسایلو کښې چه تعبیر دَ دے سرچپه (اُلټه) وی شپاړسم فصل په معنیٰ دَ دیدار دَ خدای او دَ فرښتو لیدل او دَ پیغمبرانو لیدل دا ټول په ترتیب سره راوړی دی.

پس دَ خوبونو دَ تعبیر دَ علم په نظم او طریقه ګم هر خوب په اول کښې راوړیدی. که چرته دَ دے اول الف او، یا وی هغه دَ الف او یا په حرف کښې ولټوه. او که چرته اول ئے الف او تا وی نو دَ الف او تا په حرف کښې اوګوره، او که چرته ئے اول ئے الف او یا وی یا الف او میم وی دغه ترتیب چه دَ اول حرف او دویم یاد ساته دَ دے دَ پاره چه دَ خوبونو راویستل په اسانه وی او دَ یو عالِم نه دِ دے دا خبره پټه پاتے نشی چه په دغه کتاب کښې یاده ساتی او دَ الله تعالیٰ نه دَ امداد سوال کوم دَ دغه کتاب په پوره کولو کښې او دَ الله تعالیٰ په دواړه جهانونو دَ ثواب سترګے په لاره یم او الله ښهٔ پوهیږی.

**د دے علم فضیلت او ثواب د قرآن کریم او احادیثو په رڼا کښې**

په دے پوهه شه چه دَ تعبیر علم یو پاک علم دے او یو عزتمن علم دے چه الله تعالیٰ حضرت یوسف علیه السلام ته ورکړے وو او هغهٔ کښې ئے دا علم لیښے وو لکه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ (یوسف۲۱) او عبد الله ابن عباسؓ فرمائیلی، اول شے چه الله تعالیٰ محمد صلی الله علیه وسلم ته ورکړو، هغه دا وو چه هغهٔ یو مقرّبه فرښته په خوب کښې ولیدله او ورته فرښته وویلے چه دَ خوشحالئ زیرے دِ دے وی تا لره چه الله تعالیٰ ته دَ پیغمبرانو دَ پلے نه وکرز ولے او ته ئے غوره کړے یے او ته ئے آخری پیغمبر کړن ولے ئے وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ (الاحزاب۴۰) دا ئے ورته وویلے. رسول الله صلی الله علیه وسلم دا بیدا ارشو دَ پیغمبری خوب دَ خیر او دَ اقبال خوب دے او دَ معراج نه ئے روستنه بل خوب ولیدو لکه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی: ( لَّقَدْ صَدَقَ اللَّهُ رَسُولَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ (فتح۲۷) چه تر دے ځایه او فرمائیل فَتْحًا قَرِيبًا )

او دَ ابراهیم علیه السلام په قِصه کښې فرمائیلی دی چه إِنِّي أَرَىٰ فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ فَانظُرْ مَاذَا تَرَىٰ) تر دے ځایه صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ (صٰفّٰت ۱۰۵)

او په حدیث شریف کښې هم دغه شان راغلی دی چه دا دَ یوسف علیه السلام معجزه وه، نو چه کوم علم دَ پیغمبر معجزه وی نو هغه علم به یو پاک او مقدس

علم وی او هغه څوک چه دَ پیغمبرانو دَ ډلے څخه نه دی هغوی دَ خوب په ذریعه اولیاء شوی دی. او هشام بن عروهؓ دَ خپل پلار نه همدا سے روایت کوی چه هغه ویلی دی دَ تعبیر په باره کښے الله تعالیٰ دغه آیت فرمائیلے دے لَهُمُ الْبُشْرٰی فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا (یونس ۶۴) الله تعالیٰ دِ دے خوشحالی زیری ته دَ صالحانو خوب ویلے دے چه صالح او نیک خلک را ئشی خوبونه ګوری یا څوک دا سے خوبونه اوګوری چه دَ هغے په صدق او رښتیا والی کښے آیات او احادیث وارد شوی دی. دَ حضرت انسؓ چه دا جمله راوړم نو کتاب اوږدیږی او هغه دا سے روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی: (الرُّؤْیَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَاَرْبَعِیْنَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ) یعنی دَ صالح او نیک سړی خوب شپږ څلوېښتمه حصه دَ پیغمبرئ ده. دا دے حدیث روایت بخاری او مسلم کړے دے.

همدارنګه نور پیغمبران همدغه شان وو هر څه چه ئے دَ الله تعالیٰ نه غوښتی وو الله تعالیٰ ورته دَ هغے په خوب کښے ښودنه کړے وه. په حدیث شریف کښے راغلی دی دَ عبدالله ابن عباسؓ نه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دَ خوب لیدل وحی ده چه الله تعالیٰ ئے بنده ته علامه ورښکاره کوی او دَ خیر او شر ورته رسوی دَ دے دَ پاره چه بنده مغرور او متکبر نشی او دَ الله تعالیٰ دَ امره غافله نهٔ وی.

ابو هریرهؓ فرمائیلی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم بیمار شو دَ رسول اللهؐ ملګری او صحابه کرام دَ غمه ډک ورته راغلل او ورته ئے وویلے چه یا رسول اللهؐ تا به مونږ ته دَ خیر خبر راکولو او که چرته العیاذ بالله منها تا ته خپله نیته مقرره کړے شی یعنی دَ دُنیا نه لاړشے نو مونږ به دَ دین په کار کښے په هقه صحیح ت بیر څنګه پوهه شو؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیل: بعد وفاتی ینقطع الوحی ولا ینقطع المبشرات. زما دَ وفات نه پس وحی بندیږی مګر دَ خوشحالۍ زیری (خوب لیدل) نهٔ بندیږی او نهٔ ختمیږی. صحابهٔ ورنه تپوس اوکړو چه دَ خوشحالۍ زیری څهٔ شے دے یا رسول اللهؐ وے فرمائیل: الرؤیا الصالحة التی یراها المرء الصالح) یعنی هغه نیک خوبونه چه یو نیک سړے ئے ګوری یا یو کس ئے دَ بل چا دَ پاره ګوری.

**دَ دے علم فضیلت دَ صحابۀ او دَ بزرګانو دَ اقوالو نه**

او په حدیث شریف کښے راغلی دی دَ ابو سعید خدریؓ نه. دے وائی چه اوریدلی م دی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه چه رسول اللهؐ به خپلو یارانو ته فرمائیل چه یو کس دَ ستاسے نه یو نیک خوب

اُوگوری باید چه دَ الله تعالیٰ دَ شکر کلیمې ووائی اودَ الله تعالیٰ شکر ادا کړی اوهغه خوب بیا خپلو ملګرو او یارانو ته واوَروی اوکه چرته ناپسندیده او بدکاره خوب یونیک سړے اوګوری نوخو ځله دِ اعوذ بالله من الشیطن الرجیم ووائی اودَ دے دَ شر نه دِ په الله تعالیٰ باندے پناه اوغواړی او هغه خوب دے چاته نهٔ آوروی دا دَ دے دَ پاره چه دَ دے خوب بدای ورته ونهٔ رسیږی۔

او په حدیث شریف کښے دی چه دَ امیر المؤمنین حضرت علیؓ ابن ابی طالب نه۔ دے وائی چه مومن بنده خوب اوګوری یا هغهٔ ته خوب ښکاره کړے شی نو دا واجب دی چه په تعبیر ځان پوهه کړی دَ دے دَ پاره چه دَ نیک خوب دَ خوشحالئ نه خوشحاله شی اودَ بدخوب نه ځان اُوساتی یعنی په دُعاګانو اوعبادت الٰهی او په صدقو ورکولو مشغوله شی۔

ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه علم تعبیر او نورو علوموکښے دا فرق دے چه دَ علم طالب دَ دے علم دَ اصولو خلاف نشی کولے او دَ دے قیاس قابل تعبیر هم نهٔ وی او هغهٔ ته دَ تعبیر طریقه نهٔ معلومیږی مګر دا علم یو داسے علم دے چه دے دَ خپلو اصولو او قاعدو خلاف کیږی ځکه دا دَ دے په وجه چه دَخلکو شکلونه اوشباهت او صفت، دیانت او اعتقاد باندے، همدارنګه دَ وختونو په اختلاف سره هم بدلیږی ځکه چه څهٔ وخت خو تعبیر مثل او اصل سره کول وی او څهٔ وخت دَ دے ضد سره کیږی۔ کله خوب صحیح وی او کله خوب غلط وی یعنی ګډ وډ خوبونه)

په دے هم پوهه شه چه هرڅوک یو علم لری۔ هر عالم چه یو علم لری نو هغهٔ دَ نورو علمونو نه بے پروا وی مګر تعبیر کوونکے خامخاضرورت لری علم تفسیر قرآن ته او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیثو شریفو ته او هم دارنګه مثالونو ته او دَ عربو او عجمو اشعارو ته او نوادرو ته او علم اشتقاق لغت او متداولو الفاظو ته یعنی دَ یو لفظ نه بل لفظ اختتل همدارنګه دَ دے عالم ته پکار دی چه نیک وی او په باریکانو پوهیږی او ادیب هم وی او دَ خلکو په ښو احوالو او ښو صفتونو هم پوهیږی په قیاس اودَ علم په ښو قاعدو پوه وی اونور هم پوهولے شی اودَ الله تعالیٰ نه امداد غواړی چه دَ نیغ لارے راهنمائی دکړی او ژبه یم په اصلاح او نیکئ وچلیږی او دغه علم الله تعالیٰ هغه چاته ورکوی چه هغه پاک دی دَ حرامو خوړلو ځنے، همدارنګه پاک وی دَ بے کاره خبرو ځنے او دَ بدئ نه

ځان ساتی دَ دے دَپاره چه دَ علماءِ په صف کښے او دَ پیغمبرانو وارثه کښے داخل کړے شی اودَ پیغمبرانو په وارثانو کښے شمار کړے شی نو پس په عقلمند و لازم دی یادول دَ دے علم او دَ دے علم دَ قاعدو پیژندل هم واجب دی ځکه چه هر خاص عام، جاهل، عالم ته دَ دے علم حاجت شته دے مگر هغه قوم ته نشته دے چه جاهلان دی۔ الله تعالیٰ دَ هغوئ په باره کښے فرمائی ( اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ٥)⁽¹⁾ الله تعالیٰ ښهٔ پوهیږی۔

## اول فصل۔ اول فصل دے دَ مزاج او طبیعت په پیژندلو کښے

په دے فصل کښے دا بیانوو چه خوب او دَ هغے مزاج څهٔ شے دے؟ په دے باندے پوهه شه چه حکمانو فرمائیلی دی چه دَ خوب سبب دَ هغه وچو بخارونو پورته کیدل دی چه دَ ټبو سړی دماغو ته پورته کیږی، دَ دے په وجه ټول حواس او قوتونه ارام پیدا کوی او خوراک هضمیږی او دَ بدان وینه پخیږی۔ طبیب دے خوب ته طبیعی وائی۔ بعضے وائی چه کینودل دَ روح دی په استعمال دَ حواسو کښے، او څخے وائی چه خوب فعل دے له فعلونو دَ دماغو څخه او دا طبعی فعل دے ځکه چه دے سره قوتونو ته آرام رسیږی خاص طور سره قوت تخیل او قوت فکر ته زیات آرام رسیږی او دا قوتونه چه ذکر نے اوکړے شو دا دَ روح نفسانی حرکات دی او دَ دے ځائے دماغ دے او دَ دماغو ارام خوب وی دَ دے دَپاره چه روح نفسانی تسکین ومومی۔ دلیل په دے خبره دا دے چه یو کس دَ علم په زده کړه کښے مشغول شی او دَ شپے گرمی او خشکی دَ دهٔ په مزاج باندے غالبه شی نو روح نفسانی دَ حرکت په زیاتوالی سره سست او کمزورے شی نو دد ے نه بیا تکلیف او مرض پیدا کیږی، دَ دے علاج یخ او ترشیان دی لکه بنفشه غوړ او روغن نیلوفر او هغه شیان چه دَ دے دَپاره مناسب وی۔

حکیمانو دا خبره هم کړے ده چه خوب په دوه قسمه دے چه یو ته طبعی خوب ویل کیږی او بل ته غیرطبعی۔ لیکن طبعی حرارتِ غریزی قائم ساتی اصلی گرمی نه د ننه نظر ساتی لیکن یوځو نفسانی قوائے سستے کیږی ځکه چه په دے تری غالبه شی مگر بکار دی چه خفقان لرے کړی او هغه فضلات چه په بدن کښے جمع کړے شوی وی هغه ټول دَ خولو په ذریعه لرے کړی۔

غیرطبعی خوب۔ دا خوب په درے قسمه دے (۱) دَ بدن دَ فساد مزاج نه۔

(۱) دا کسان پشان دَ څناورو دی بلکه دد وئی نه هم گمراه دی دا کسان دوئی غافل دی

(۲) اخلاط یعنی دَ وینې، صفرا او دَ سودا دَ زیاتوالی نه۔
(۳) دَ ناپاکو او گندا ه خوراکونو څخه یا دَ یخ او تر دماغو دَ افکارو نه دی۔ دَ دے سرمایه دَ دماغو سردښه او دَ تری نه بنکاره کیږی دَ دے وجه نه دَ گرم او خشک دماغ والو ته خوب کم ورځی او هغه دماغ چه گرم او تر وی خوب ورته ډیر ورځی۔
که چرته څوک اعتراض وکړی چه ته څه پوهیږے چه خوب یو فعل دَ یخ او تر افعالو او راحت او قوت متخیله او متفکره دے؟
جواب داد ے چه موږ ته دَ عقل په ذریعه معلومیږی چه ناسته دَ ولاړے نه راحت دے، دَ آرام په وجه سره بیداری او دَ دماغی قوتونو اسایش دے۔ دَ دے وجه نه په یقین سره خوب دَ دماغو دَ افعالو نه یو فعل دے او وضاحت او شرح م دَ طبعی خوب او غیرطبعی خوب قوت، ضعف، تخیل او دَ فکر قوت او دَ ذکر قوت په دلیل او حجت سره دَ پخوانو حکیمانو په کتاب کفایت الطب کښے په تفصیل سره بیان کړی دی۔(نوهلته ئے بیا اوگوره که تفصیل ئے غواړے)

## دویم فصل دے دَ خوبونو قسمونو پیژندلو کښے

حضرت دانیال[ؑ] فرمائیلی دی چه خوب په اصل کښے دوه شیان دی، یو په حقیقت حال باندے خبروال کوی او دویم دَ کار سرته رسیدلو اطلاع ورکووکے وی، او دَ دے دوه دَ څلور قسمونه دی: (۱) یو خوب امرکووکے دے (۲) دویم قسم ئے منع کووکے دے۔
(۳) دریم قسم ویروونکے دے (۴) څلورم قسم دَ خوشحالئ زیرے ورکووکے دے۔
عبدالله ابن مسعودؓ فرمائیلی دی، چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (الرؤیا ثلثة اقسام من الله تعالیٰ وبُشری للمؤمنین فی حیاتهم) یعنی خوب په درے قسمه دے، اول هغه چه دَ الله تعالیٰ دَ طرفه وی او دَ خوشحالئ زیرے وی دَ مسلمانانو دَ پاره دَ دوئ په ژوند کښے۔ دویم قسم من الشیطٰن الذین اٰمنوا۔ دویم قسم خوب دَ شیطان دَ طرفه وی دَ ایمان خاوندانو ته۔ دریم قسم اضغاث احلام یعنی پریشانه کوونکی دی۔
یعنی خوب په درے قسم دے یو دَ الله تعالیٰ دَ طرفه چه دَ ایمان خاوندانو ته دَ دُنیا په ژوند کښے زیرے دے۔ دویم قسم هغه خوب چه خلک په غم او اندیښنه کښے اچوی۔ دریم قسم هغه خوب دے چه پریشانه دے۔
امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، چه حقیقت کښے خوب په درے قسمه دے یو ته حکم دویم ته متشابه او دریم قسم ته اضغاث احلام ویل کیږی او اضغاث

احلام څلور قسم خلک ګوري یو هغه ډله چه دَ هغوی طبیعت فساد طرف ته مائله وي. دوېم قسم چه هغوئ شراب څښکي، درېیم قسم هغه ډله چه هغوئ ګهه وډه سودا پیدا کوونکي خوراک خوري لکه تور بانجان، مسور دال، مالګه اکثر وډه غوښه او کوم شیان چه هغه دَ دے څلور وسره مشابه وي او څلورم چه نابالغه ماشومان داسے خوبونه ګوري.

محمد بن سیرینؒ فرمائیلي دي چه خوب په دوه قسم دے، یو خوب حکم یعنی فیصله کن چه هغه خوب صحیح وي، دوېم قسم اضغاث. احلام چه هغه پراګنده خوب وي او اضغاث دَ وښو ځنګلو ته ویل کیږي لکه څنګه چه ګیا او واښه متفرق او ګډ وډ وي په چمنونو کښے.

پریشان خوبونه: دا مختلف خوبونه دي چه په درے قسم دي. (۱) دَ طبیعت او خواهش دَ غلبے نه پیدا کیږي او ځنے دَ شیطان دَ نمائش نه او ځنے دَ نفس دَ خپلو خبرو سره، او دا درے واړه قسمونه صحیح نه وي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي، چه خوب په درے قسم دے، یو قسم هغه دے چه خوشخبري دَ الله تعالیٰ دَ طرفه، دوېم قسم دَ شیطان دَ طرفه وسوسه او سرداده. درېم هغه قسم چه په خپل خیال کښے راشي او دَ شوق دَ وجه نه هغه په خوب کښے ووینی او هغه صحیح خوب دَ فرښتو په شکل کښے وي چه دَ لوح محفوظ نه دَ خوشحالي زیرے ورکوي دَ کولو په شي (څېز) بانډې یا نیک مړي نه چه دَ هغه کار دَ واقع کیدو نه مخکښے هغه دَ دے دَ ضرر او نقصان نه محفوظ شي چه ورته رسیږي دَ دے وجه نه چه څوک خوب اوګوري او بیا ئے هیر کړي نو تعبیر ویستونکے دے په هغه توبه اُو باسي له ګناهونو ځنے او دَ خوب هیرول دَ ګناهونو ځنے دي ځکه چه دَ خوب نمائنده فرښته دَ لوح محفوظ نه.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي چه خوب په دوه قسمه دے یو هغه صحیح او درست خوب دے او دوېم دروغجن خوب دے. او رښتینے خوب بیا په درے قسمه دے، اول قسم ته بشارت ویل کیږي او دوېم قسم ته خبردارے درېیم قسم ته الهام ویل کیږي. دَ بشارت قسم دا دے چه الله تعالیٰ یوه فرښته په لوح محفوظ مقرر کړے ده، دَ دے دَ پاره چه څه نیکي او بدي بني آدم باندے راتلونکي وي دَ هغې خبردارے ورکړي په خوب کښے ورته ښکاره کړي او هغے ته ملک الرؤیا ویل کیږي چانته چه اُوغواړي دَ هغه زیري نو بني آدم ته ئے په خوب کښے ورښکاره کړي او خوب کښے ورته وراُوښئ

دریم قسم دَ خبرداریٔ خوب دادے چه ملك الرؤیا فرښته هغه ووېروي او دَ الله تعالیٰ شي ورته اطلاع ورکړي چه کوم شے ورته رسیږي دا دَ دے دَ پاره چه خوب لیدونکے اطاعت اوکړي او دَ ګناه نه ځان اوساتي او دا دے په وجه دَ الله تعالیٰ عبادت اوکړي او هغه شرنه چه په دهٔ راځي بچ شي او امن کښے شي۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ ۝ (النور ۳۱) ترجمه: اے دَ ایمان خاوندانو الله تعالیٰ ته توبه اوباسئ دَ دے دَ پاره چه خلاصے اُومومئ۔

دریم قسم دَ الهام خوب۔ دا هغه خوب دے چه الله تعالیٰ فرښتے ته امر کوي، چه زما دے بنده ته په خوب کښے الهام اوکړئ دا دَ دے دَ پاره چه بنده صدقه ورکړي او همدارنګه جهاد وکړي او الله تعالیٰ ته رجوع وکړي او دَ بدیو نه ځان اُوساتي او دَ خلکو سره نیکي وکړي۔

دروغجن خوب په درے قسمه دے۔ اول قسم ته دَ همت خوب وئیل کیږي، دویم قسم ته دَ علت خوب وئیل کیږي او دریم قسم ته شیطاني خوب وئیل کیږي یعني پریشان او پراګنده خوب۔

دَ همت خوب۔ دا هغه خوب دے چه یو کس په ویښه سوچ کولو او هغه بیا په خوب کښے اووینی، نو دَ دا سے خوب اصل او تاویل نشته دے۔

دویم دَ علت خوب۔ دا هغه خوب دے چه یو دردمند سړے دَ درد نه ژاړي او په خوب کښے هغه درد زیاتیږي، خراب او خوفناک شیان په خوب کښے ویني او دَ دے خوب سبب درد وي، دا سے خوب ته هم څه اصل او معنیٰ نشته۔

دریم قسم شیطاني خوب۔ دا هغه خوب دے چه دَ دے دَ بدن ونځل ولجب وي (جنابت کښے وي) یا ناممکن شیان اوګوري۔ دَ دے تعبیر او تاویل نهٔ وي، دا قول دَ الله دے چه وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ ۝ (یوسف ۴۴) مونږ دَ پراګنده خوبونو عالمان نهٔ یو۔

حضرت علی امیرالمؤمنین فرمائیلي دي، چه دَ الله تعالیٰ دَ عجیبه مخلوق نه یو خوب هم عجب مخلوق دے او څه چه په خوب کښے نیکي او بدي ګورم هغه دَ الله تعالیٰ حکم وي۔

ابن سیرین فرمائیلي دي چه دَ خوب دَ عجائبو نه یو دا هم دے چه سړے په خوب کښے خیر، نفع او راحت ویني یا شر او آفت ویني او هم هغه خیر، نفع او راحت یا شر او آفت بالکل په بیداري کښے ویني۔ بلکه خبره داده چه ډیر

ګنده خلك او ګنده ژبي وي، چه په وینبه اوبزده بیتونه نشي یادولے په خوب کښے ئے وائی او یاد ئے کړی او په وینبه ئے صحیح لولی او ډیر جاهل او ناپوهه خلک داسے هم وی چه دَ حکمت خبرے او ښۀ الفاظ بیانوی چه هغوئ په خوب کښے یاد ے کړے وی چه هغه هیڅ یو حکیم او عالم نشی بیانولے او په وینبه هغه بیا هم صحیح بیانوی۔

جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه دَخوب دَ عجائباتو نه یو دا هم دے چه په خوب کښے یو دروغژن شے (څیز) په نظر راشی چه دَ هغے تعبیر دَ هغه په ځوی یا ورور واقع کیږی لکه دَ مثال په ډول حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم خوب اولیدلو چه ابو جهل اسلام راوړلو۔ دا خوب روسته په عکرمهؓ صادق شو چه دَ ابو جهل ځوئ حضرت عکرمهؓ اسلام راوړو۔

یو سړی خوب اولیدلو چه اسد امیر مکه اسلام راوړو، حال دا چه روسته دَ دے نه حضرت عباسؓ دَ اسد ځوی اسلام راوړو۔

دا هم کیږی چه دَ ماشوم دَ خوب تعبیر په مور واقع کیږی او دَ غلام دَ خوب تعبیر په آقا یا بادار باندے واقع کیږی۔ داسے عجائبات په خوب کښے ډیر دی که چرته ټول یادوم نو کتاب اوږد دیږی۔

## دریم فصل۔ دَ نفس او روح په بیان کښے۔

دا خبره یاده کړه چه الله تعالی فرمائیلی: (اَللّٰهُ یَتَوَفَّی الْاَنْفُسَ حِیْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِیْ لَمْ تَمُتْ فِیْ مَنَامِهَا فَیُمْسِكُ الَّتِیْ قَضٰی عَلَیْهَا الْمَوْتَ وَیُرْسِلُ الْاُخْرٰی اِلٰی اَجَلٍ مُّسَمًّی) الزمر ۴۲

ترجمه: الله تعالی دَ مرګ په وخت کښے روحونه اخلی او هغه چه په خوب کښے نه دی مړۀ شوی چه په چا دَ مرګ حُکم دے هغه ایسار وی او بل وخت مقرره پورے ئے پریږدی۔

دَ علماؤ او حکماؤ په مینځ کښے دَ روح او نفس په باره کښے اختلاف دے۔ ځنے وائی چه دواړه یو شے دے۔ دَ نفس او روح معنی جان دے۔ دَ دوئ دا دلیل دے چه دَ عربو په ژبه کښے دَ نفس اته معنی دی، روح، وینه، اوبه، منی، متیازے، همت، جسم، لاس۔ او دَ روح دولس معنی دی، روح، باد، کلام، روح القدس، باران، وحی، جادو، مسیح، مریم، ژوندن، فرښته او دَ الله تعالی رحمت۔

او دَ حکیمانو ډیره ډله وائی چه دَ خوب لیدونکی روح دَ بدن نه اُوځی او بره اسمان ته ځی، او ریدل او لیدل یادساتی چه دَ بیداری وخت شی نو روح

بیا بدن ته راځي، دا دے دا دلیل دے چه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څوک په اودس کښے څملی او دَ الله تعالیٰ ذکر ئے په ژبه جاری وی دَهغهٔ روح اسمان ته ځی.

ځنے تعبیر کوونکی دا وائی چه دا حدیث دَرسول الله صلی الله علیه وسلم دَ قول ځنے نه دے او دوئ وائی که چرته دَ اُودهٔ سړی روح دَ بدن نه تلے او بدن ئے پواځے پریښودلے، نو دَ ساه اخستو حرکتونه به باقی نهٔ وے، نو چه اودهٔ سړے ساه اخلی نو دَ دے نه معلومیږی چه دَ دهٔ بدن کښے روح شته دے او دَ خوب وخت کښے روح دَ بدن ځنے نهٔ دے جدا شوے.

ځنے خلک په ځان او روح کښے فرق کوی، دوئ دا سے وائی چه دَ خوب وخت کښے روح روان دَ بدن نه اُوځی او په مخلوق کښے گرځی، بیا بدن کښے واپس راځی او هغه چه دِ ے روح په خپل چکر او گرځیدو کښے لیدلی وی بدن ته خبر ورکوی.

دَ دے خلکو دا دلیل دے چه روح دَ قُرص آفتاب مشابه دے او روان آفتاب دَ رڼړا مشابه دے لکه چه دَ نمر قُرص په څلورم اسمان بانډی دی او دَ هغے رڼړا بیا په ټول جهان وی.

او دَ حکماوٴ یوه ډله داسے وائی چه جان او روان دواړه یو شے دے او دواړو کښے څهٔ فرق نشته دے چه دَ دے صفت دَ عقل دَ قیاس په مطابق داسے دے لکه چه دَ اُوبو نه واوره او دَ واوړے نه اُوبهٔ جوړیږی.

دَ حکیم ارطالیس دا نظریه ده چه دَ دهٔ په نزد نفس مبدأ اول دے او دا نفس دَ روح نه زیات شریف او بزرگ دے لیکن دَ نفس او روح حقیقت ما په خپل کتاب سماز المسائل کښے بیان کړیدے او دَ حکیمانو اقوال هم په دِے کتاب کښے راوړی دی.

دَ اهل السنت والجماعت - دَ دوئ په نزد روح امرِ رب دے لکه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي[1].

ترجمه:- سوال کوی تا نه اے پیغمبره دَ روح په باره کښے. هغوئ ته ووایه چه روح څما دَ رب امر دے.

څما بهروسه او اعتماد په الله تعالیٰ بانډے دے او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خبرو مبارکو هم اعتماد دے او دَ حکماوٴ اقوالو نه مطلب دا دے چه څما کتاب دَ دوئ دَ اقوالو دَ ذکر نه خالی پاتے نهٔ وی. دَ الله تعالیٰ نه دا سوال

(۱) بنی اسرائیل

کووم چه ما دِ په خپل دینِ الٰهی او دَ پیغمبرؐ په سنتو باندِې قائم وساتی او دَ خیر او کرامت امداد را بخشش کړی۔

## څلورم فصل۔ په علامو سره دَخوب رښتینی کیدَو په بیان کښے

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه څوک خپل خوب په علامه او دلیل سره په ښه طریقه لیدل غواړی نو دے دِ چه څومره کیدے شی په اودس سره په ښی اړخ دِے څملی او الله تعالیٰ دِے یادوی او زیاته ډوډئی دِے نهٔ خوری ځکه چه څوک ډیره ډوډئی خوری هغه الله تعالیٰ نهٔ یادوی دَ دهٔ معده ډکه وی او دَخوراک بخارات دماغ ته رسیږی او طبیعت ئے متخیل کړئی په دے وجه ډیر خوړونکی دَډوډئی مختلف او پریشانه خوبونه وینی، او بیخی لږه ډوډئی دِے هم نهٔ خوری ځکه چه معده کوم وخت خالی وی دَطعام نه او دے په خالی معده اُودهٔ شی دَ دے سره هم پریشانه خوبونه په وینی، طبیعت غذا ته موندلو سره ضعیف او سست شی او خوب نهٔ ورځی او که اُودهٔ هم شی تو پریشانه او پراګنده خوبونه ګوری او سړے باید دَخوب وخت کښے نه ډیر موړ وی او نهٔ ډیر وږے وی دا دَ دے دَپاره چه څهٔ خوب او وینی صحیح او درست وی او خوب دِ هم نهٔ هیروی۔

دَ حضرت عبدالله ابن مسعودؓ نه روایت دے، چه یو اعرابی سړے حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته را غلو او دلے عرض ئے اوکړو چه یا رسول اللهؐ، په پرون رم دا سے یو خوب اولیدلو نو هغه پراګنده خوب ئے بیان کړو۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل چه څهٔ شے دِ خوبے وو؟ دے اعرابی ووئیلے چه یا رسول اللهؐ، ډیرے پخے کجورے رم خوړلے وے۔ رسول پاکؐ جواب ورکړو چه دَ دے خوب څهٔ صحیح تاویل نهٔ راځی دَ دے دَپاره ډیر تعبیر بیانوونکی دَ ډیرو خوبونو تعبیر بیانوی او دَ هغے تاویل درست نهٔ راځی۔ تعبیر بیانوونکی دَ دے خبرو نه نهٔ غافله کیږی او دَسوال کوونکی نه دِے سوال وکړی زوسته دِے بیا تعبیر بیانوی دا دَ دے دَپاره چه بیان شوے خبره رښتینی او درسته وی، او دَخوب دَ رښتینوالی دا علامے دی کومے چه بیان شوے۔

ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه انسان ډیر خوبونه ګوری چونکه هغه دَهغهٔ لائق نهٔ وی دَ دے تاویل دَ دهٔ دَ اقاربو ورور یا پلار یا ځوی ته واپس کیږی، او څنے وخت دَخوب تعبیر دَ دهٔ په مړګ تاثیر کوی۔ دَ دے په باره کښے ما دَعکرمه

بن ابی جهل په بابت کښې تقریر کړے دے چه پلار ئے خوب کښې اولیدو او دهغې تاویل دَ هغۀ په ځوی ظاهر شو لکه څنګه چه دَ نابالغ ماشوم دَخوب تعبیر دَهغۀ په پلار واقع کیږی، هرکله چه یو معبر په دے اصولو غور وکړی نو دۀ ته هیڅ څۀ مشکل نۀ راپیښیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، چه کله بنده ته رنځ او آفت په نظر راشی مګر تاویل دَ هغې خلاف وی لکه څنګه چه دَ غم او خوف تعبیر بنادي او خوشحالی ده. الله تعالیٰ فرمائیلی دی وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا[1] ترجمه: زۀ به دَ دوئی ویره ضرور په امن بدله کړم).

او دَ بادشاه نه او دَ دښمن نه تختیدل او دَ هغه څۀ چه دَ دے مشابه وی دَ دے امر دلیل دے چه دَخوب لیدونکے به دَ الله تعالیٰ په پناه او امن کښې وی. دَ الله تعالیٰ کلام دے فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ[2]

ترجمه: دَ الله تعالیٰ طرف ته زغلئ، زۀ تاسے دَ دے نه په ښکاره ویروونکے یم.

دَ دے تاویلاتو قسمونه ډیر زیات دی، انشاء الله په خپل ځائے کښې به ئے بیان کړم.

## پنځم فصل دَ رښتیا او دَ دروغژن خوب پیژندلو کښې

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی چه خلق په شکل، صورت، طبیعت قد او خبرو اترو کښې دَ یو بل نه مختلف دی او دَ اختلافِ ښهر او دَ هوا دَ وجه نه دَ یو خوب دَ بل په شان نۀ وی کله چه دَ چا په طبیعت دَ غوړو، حلوا، شراب او همدارنګه دَ دے په شان نه دَ نورو شیانو دَ استعمال په وجه وینه غالبه کیږی نو په خوب کښې دَ رګ وهل او سینګئ او دَ شونډو حرکت او خوشحالی او دَ سرود آواز او هغه شیان چه دَ دے سره مشابهت لری آوری به نو تعبیر کوونکے دِ دَدۀ چهره رنګ او دَ بدن غټوالے او خوشحالئ ته اوګوری. په دے پوه شه چه دا خوب دَ وینې دَ غلبے کیدو نه دے او دَ دے هم هیڅ اصلیت نشته دے.

کله چه دَچا په طبیعت ګرم او خشک شیان لکه پنیر، پیاز، تورمرچ خوراک سره صفرا غالبه شی نو دا سړے به په خوب کښے اُور، ویره، شمع، لالټین او دا سے شیان ډیر ګوری تعبیر کوونکے دِ دے دَدۀ بدن زیړوالی او دَ بدن کمزوتیا او دَ حرکت تیزوالی ته اوګوری نو په دے دِ پوهه شی چه په دے سړی دَصفرا غلبه ده نو دَ دے خوب څۀ اصلیت او تاویل نشته، او که چرته دَچا په طبیعت

[1] النور ۵۵ [2] الذاریٰت ۵۰

دَ بلغم زیاتوونکی شیان استعمال سره لکه شومله، ماستهٔ، شودهٔ او دَدے مشابه شیانو سره بلغم زیات شی نو دا سړے به خوب کښے واوره، باران اوخهٔ چه دَدے مشابه وی وِیروینی او کله چه تعبیر بیانوونکے دَ خوب لیدوونکی رنګ سپین او بدن ئے څورب اُوګوری نو په دِے دِ پوهه شی چه دَدهٔ په مزاج دَ بلغم زیاتوالے دے، دَ دا سے سړیٔ خوب هیڅ اصلیت نشته دے۔

او که چرے دَچا په طبیعت دَ سودا راوستوونکی شیانو لکه مالګه غوښه او تُرش شیانو او تورو بانجانو سره او دَدے پشان نورو شیانو دَ سودا غلبه دی نو دا سے سړے به خوفناک خوبونه، مار، لړم، تیارهٔ وغیره وِیروینی کله چه تعبیر کوونکے دَدهٔ رنګ او توره څهره اوګوری نو دَدهٔ صورت به غمژن او فکرمند اوګوری او بغیر دَ کومے وجه نه به په خپل ځځ او دِیره بانډے لاس راکاږی نو په دِے بانډے بیا پوهه شه چه په دهٔ دَ سودا غلبه ده او دَدهٔ خوب بے بنیاده دے تعبیر کوونکی ته پکار دی چه په دِے تولو خبرو غور وکړی او دَ هر یو خوب تپوس په ښهٔ شان سره وکړی ښهٔ دِ پوره ځان پوهه کړی او بیا دِے تعبیر بیان کړی، دا دَدے دَپاره چه خوب مے رښتینے راشی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه کوم خاوندان دَ همت وی لکه عاشق معشوقه ګوری په خوب کښے یا یو کسب ګر خپله پیشه ( ویني په خوب کښے لکه جُولا کپړے، لوهار اوسپنه اُوویني نو تعبیر بیانوونکی بانډے لازم دی چه دوباره تپوس دِے ترے اُوکړی چه پرون دِ څهٔ خوړلی وو او په کوم خیال او فکر کښے اُوده شوے وے، روسته دِے تعبیر بیان کړی۔

یا چا خپل ځان په واوره، باران، یخ او ګرم کښے ګرفتار اولیدلو کله چه بیدار شی نو دَ خوب جامه دَدهٔ نه جُدا وی، دا بربنډوالے دَدهٔ دَخوب باعث دے لهذا دے خوب ته څهٔ اصل نشته او بے حقیقته دے۔

که چرے چا اولیدل چه په حمام او نمر او ګرمئ کښے وو، نو چه کله بیدار شی نو ځان ئے په ډیرو کپړو کښے تاؤ کړے وو نو په خوب کښے ګرمی محسوسول دَ جامو ډیروالے دے. دا سے خوب هم بے بنیاده دے.

که چرے په خوب کښے څوک اوویني چه دے دَ مرض او یا دَ جسمانی درد نه ژاړی او مریض پروت دے او په رښتیا مریض وو، نو دا خوب هم بے بنیاده دے که چرے څوک په خوب کښے اوویني چه متیازے کوی او ویخ شو، په جامو کښے

ځ متیازې کړې اولیں لے یاځ دا معلومه کړه چه متیازې زور سره ورته راغلي دي، دا سے خوب بے بنیاده دے اودے خوب تعبیر نشته دے.

## شپږم فصل۔ دَخوبونو په مینځ کښې فرق پیژندل او دهر یو کس خوب تفصیلي بیان

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی چه خوب لیدونکے دَ دوه ډځیزونو نه خالي نهٔ دے، یا په مؤمن وي یا به کافر وي، دَ دے حقیقت کښې څوارلس قسمونه دي۔ (۱) دَ بادشاهانو خوب (۲) دَ قاضیانو خوب (۳) دَ مفتیانو خوب (۴) دَ عالمانو خوب (۵) دَ ازادو خلکو خوب (۶) دَ غلامانو خوب (۷) دَ ناریته ښځو خوب (۸) دَ ښځو خوب (۹) دَ نیکانو خلکو خوب (۱۰) دَ بدکارانو خلکو خوب (۱۱) دَ دولتمنو خلکو خوب (۱۲) دَ فقیرانو خلکو خوب (۱۳) دَ لویانو (بالغو) خلکو خوب (۱۴) دَ نابالغو خوب

په دے ټولو کښې اوله درجه دَ بادشاهانو خوب درست دے او فرمائي چه دَ بادشاهانو خلکو خوب دَ نورو خلکو په خوبونو باندے دومره فضیلت او بهتري لري څومره چه دَ بادشاهانو په رعیت باندے فضیلت دے ځکه چه الله تعالیٰ بادشاهانو ته عزت او سرداري ورکړیده او خلکو ته ئے دَ بادشاهانو دَ اطاعت حکم کړیدے ځکه چه الله تعالیٰ فرمائیلي دي۔ (یَاۤ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَطِیْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِی الْاَمْرِ مِنْكُمْ (النساء)

ترجمه:۔ اے دَ ایمان خاوندانو، تاسو دَ الله اطاعت وکړئ او دَ الله دَ رسول اطاعت وکړئ او دَ هغه آمر اطاعت هم اوکړئ چه دَ ستاسے ځنے وي۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي (مَنْ اَطَاعَ الْاَمِیْرَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ) ترجمه: چا چه دَ امیر اطاعت وکړو، هغهٔ دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول اطاعت وکړو.

لهٰذا کوم خوب چه بادشاه اُووینی هغه خوب بادشاه ته نزدے وي او دَ بادشاه خوب زیات صحیح وي۔

۲:۔ دَ قاضي خوب دَ نورو خلکو په خوبونو درجه لري ځکه چه عدل او انصاف او دَ خاص کاروبار بندول او خلاصول دَ قاضي کار دے۔

۳:۔ او دَ مفتیانو او فقهاء خوب دَ نورو په خوبونو فضیلت لري ځکه چه دوئ اصول فقه او حدود مسلمانی فرض، سنت او دَ حلالو او دَ حرامو پیژندلو خاوندان دي۔

۴:۔ دَ عالمانو خوب دَ عوامو په خوب اُوچته درجه لری ځکه چه الله تعالیٰ دوی ته شرافت او توفیق ورکړے دے، دِے دَ پاره چه خلک په سمه لار بانددے را اُړوی او دَ نیکئ او اطاعت لارے ته خلک را تشویق کړی۔

۵:۔ دَ آزادخلکو خوب دَ غلامانو په خوب اوچته درجه لری داځکه چه الله تعالیٰ ازادو خلکو ته په غلامانو شرف ورکړے دے۔

۶:۔ دَ غلام دَ خوب نه مولیٰ ته فائده وی ځکه چه غلام ته دَ دے نه حصه رسیږی۔

۷:۔ دَ سړو خوب دَ ښځو دَ خوب نه اوچته درجه لری ځکه چه الله تعالیٰ سړو ته په ښځو باندِ په یو څو شیانو ترجیح ورکړے ده۔ الله تعالیٰ فرمائی: ( اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَی النِّسَآءِ)[1] ترجمه: سړی په ښځو باندے غالب دی په درجه کښے۔

اوبله خبره داده چه الله پیغمبران سړو کښے راولیږل او ښځوکښے را ونه لیږل۔ او بل ځائے کښے فرمائیلی دی فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ[2] ترجمه: پس یو سړے او دوه ښځے دَ هغه خلکو ځنے چه دَ شهادت دَ پاره ئے تاسو خوښوئ )

بله وجه دَ سړو خوب بهتر والے دَ ښځو په خوب. داځکه چه دَ عقل په نزد دَ سړو صبر او بخشش رائے، شجاعت، سخاوت، امارت او خدمت او داسے نور ښه نیکاره دی۔ همدارنګه دَ ښځو په نسبت سړے په فطرت کښے زیات دے همدارنګه دَ ښځو خوب دَ غلامانو خوب ته نزدے دے او دَ نیکانو خلکو خوب فضیلت لری دَ بدکاره خلکو په خوب باندے ځکه چه دَ نیک خلکو خوب طاعت طرف ته مائل وی او دَ ګناه نه لرے وی او په بدکاره خلکو او کافرو باندے دَ قیامت په ورځ همدغه خپل خوب دلیل وی ځکه چه فاسق په ګناه زړورتیا کوی۔ همدارنګه دَ مالداره خوب فضیلت لری دَ فقیر په خوب باندے ځکه چه مالداره صدقه ورکوی زکوٰة ورکوی، حج کوی او داسے تور دَ نیکئ کارونه سرته رسوی کوم چه په پیسو سره سرته رسیږی. په دے وجه دَ مالدار خوب بهتر دے او رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه (یَدُ الْعُلْیَا خَیْرٌ مِّنْ یَدِ السُّفْلٰی) ترجمه: اُوچت یعنی ورکوونکے لاس بهتر دے دَ لاندے لاس نه یعنی اخستونکی لاس نه)۔

دَ تعبیر بیانوونکو یو بل دا هم وئیلی دی چه دَ فقیرانو دَ خوب څه اصل حقیقت نهٔ وی ځکه چه دَ دوئی زړهٔ دَ ګېډے اودَ بجوړ لاسه په غم کښے

پریشانه وی، که فقیر څوک ښهٔ خوب اُووینی نو دَ هغې اثر ډیره موده پس ښکاره کیږی. اوکه خراب خوب اُووینی نو دَ هغې اثر ډیر زر ښکاره کیږی او دَ دولتمند خوب دَ فقیرانو دَ خوب برعکس وی.

همدارنګه دَ بالغ خوب معتبر وی ځکه چه په بالغ شهوت غالب وی او نابالغ دَ عقل او ادب نه محروم وی.

دَ تعبیر بیانوونکو نه دا هم وائی که چرے دَ نابالغ خوب ښهٔ وی نو دَ هغهٔ نیکی مور او پلار ته رسیږی، او که چرته خراب خوب وی نو دَ هغهٔ اثر هم دے ماشوم ته رسیږی.

دَ نابالغ ماشوم دَ خوب په باره کښے دوه قوله دی، یو قول دا دے چه دَ ماشوم خوب رښتیا او صحیح وی او حکم ئے ظاهر وی ځکه چه دَ ماشوم زړهٔ دَ ګناه نه پاک او صاف وی او دَ دُنیا دَ شُغل نه فارغ وی.

دویم قول دا دے چه دَ ماشوم خوب صحیح او درست نهٔ وی ځکه چه دَ ماشوم عقل وغیره نهٔ وی. دَ تشه ئی او جُنب او دَ حائضه ښځے خوب درست وی. دَ مثال په طور صفیه دَ هندے لور خوب کښے اُولیدل چه دَ اسمان نه نمر او سپوږمے دَ دے په غیږ کښے را پریوتل چه دَ خوبه کله را بیداره شوه نو دَ خیبر امیر ئے دَ دے خوب نه خبر کړو. دَ خیبر امیر دے ته په مخ څپیړه ورکړه او ورته ئے دا اُووئیل، که چرته ستا خوب صحیح بیانوے نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به خیبر فتح کړی.

په بله ورځ رسول الله علیه وسلم خیبر فتح کړو او دَ مسلمانانو لښکر صفیه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوسته، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ صفیه نه تپوس اوکړو چه دا شین داغ دِے په مخ څنګه دے؟ هغې هغه خپل خوب بیان کړو چه دے لیدلے وو هغه پوره شو او دَ دے دَ خوب تعبیر درست راغلو. الله تعالیٰ په هر څهٔ ښهٔ پوهیږی.

## اووم فصل ـ دَ خوبونو په منځ کښے فرق پیژندل

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه دَ مسلمان خوب دَ کافر دَ خوب نه رښتینے دے. همدارنګه دَ عقلمند خوب دَ بے عقله دَ خوب نه او دَ نیک خوب دَ بدکاره دَ خوب نه بهتر وی. الله تعالیٰ فرمائیلی دی (اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ

سَآءَ مَا یَحْکُمُوْنَ ○⁽¹⁾ ترجمه :- ولے داګمان کوی هغه کسان چه هغوی ګناه کړے وی داسے ګمان چه زۀ به دوئ دَ هغه خلکو پشان کړم چه هغوی ایمان راوړے وی او نیک عملونه کړے وی چه دَ هغوئ مرګ او ژوند برابر دے۔ بد دے چه دوئ دا فیصله کوی۔

همدارنګه دَ بوډا کانو خوب بهتر دے دَ ماشومانو دَ خوب نه او دَ ازادے ښځے خوب بهتر دے دَ وینځے دَ خوب نه۔

تعبیر بیانوونکی له دَ هر سړی دَ خوب نیک خیال ساتل پکار دی. او کله چه دَ خوب لیدونکی نه سوال اوکړی او پراګنده الفاظ راوړی نو تول دے دَ عقل په قیاس درست کړی۔ دَ الفاظو وړاندے والے او روستوالے درست کړی او بیا دِ روسته تعبیر بیان کړی او بیا الفاظ دِ دے دَ اصول تعبیر په نظر کښے اوساتی که چرته میزان کلام نظر کښے ساتی نو بیا به غلطی نۀ وی او څه چه بیانوی نو رښتینے به بیانوی ځکه چه مخوانو علماء په هم دا قیاس کولو د تعبیر به ئے صحیح راتلو۔

**حکایت** راځی چه یو سړے دَ حضرت ابن سیرینؒ په خدمت کښے حاضر شو او تپوس ئے ورنه اوکړو چه ما دا سے خوب لیدلے دے چه دَ موذنُ دَ پاره اذان کوومه، نو دۀ جواب ورکړو چه تۀ به اسلامی حج کوے۔ په همدغه وخت کښے یو بل سړے راغلو او دَ ابن سیرین په خدمت کښے حاضر شو او تپوس ئے ورځنه اُوکړو چه ما په خوب کښے خپل ځان دَ موذنُ دَ پاره اذان کوونکے اولیدلو، دۀ جواب ورکړو او ورته ئے تعبیر دا سے بیان کړو چه په تا به دَ غلا تهمت لګولے کیږی۔

شاګردانو ورځنه تپوس اوکړو چه دَ دواړو خوبونو صورت یو وو چه دَ موذنُ دَ پاره اذان وو او تعبیر ئے ولے مخالف وو دَ یو بل نه؟ دۀ جواب ورکړو چه دَ اولنی سړی دَ شکل نه دَ نیکبختیٔ علامے معلومیدلے نو ما ورته وویل چه تۀ به حج ته ځے۔ دا دَ الله تعالیٰ ارشاد دے :(وَ اَذِّنْ فِی النَّاسِ بِالْحَجِّ یَاْتُوْکَ رِجَالًا) ترجمه :- او په خلکو کښے دَ حج اعلان (ډنډوره) وکړه، ستا طرف ته به په پښو راځی۔ <sup></sup>الحج۲۷

او دَ دوېم سړی دَ شکل نه دَ فساد علامے معلومیدلے نو دَ هغے مخالف تعبیر مے ورته بیان کړو چه په تا به دَ غلا تهمت اولګولے شی، دا دَ الله تعالیٰ ارشاد دے ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ اَیَّتُهَا الْعِیْرُ اِنَّکُمْ لَسٰرِقُوْنَ ○ ترجمه : اواز وکړو اواز کوونکی اے

⁽¹⁾ الجاثیه ۲۱

دَ قافلے خلکو، تاسو ضرور رغلئ یئ۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، چه څخنے وخت یو خوب لیدل کیږی چه دَ هغے تعبیر هم په هغه ورځ ښکاره کیږی او څخنے وخت یو خوب لیدل کیږی چه دَ هغے تعبیر یو کال پس پوره کیږی او څخنے شپے خوب لیدل کیږی چه دَ هغے تعبیر شپږ میاشتے پس پوره کیږی او دَ ځنو خوبونو شل کاله پس او دَ ځنو خوبونو تعبیر څلویښت کاله پس ښکاره کیږی۔

دَ مثال په طور حضرت امیرالمؤمنین حسینؓ دَ وړلو خوب حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم داسے لیدلے وو چه یو سپے دَ دوئ وینه څښی۔ بیا څلویښت کاله پس دَدے خوب تعبیر ښکاره شو چه حضرت امام حسینؓ شهید کړے شو۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه دَ شپے دَ خوب تعبیر دَ ورځے دَ خوب تعبیر نه قوی وی او اوله شپه (دَ شپے اوله حصه کښے) چه خوب ووینی هغه صحیح نه وی ځکه زیات وخت دَ فکرونو څخنے او دَ دُنیا دَ کاروبار نه راځی۔ او هغه خوب چه په نیمه شپه کښے وګوری هغه هم درست نه وی او دا دَ پراګنده خوبونو دَ جملے نه وی۔

دَ تولو نه اوچت او ښه خوب دَ سحر یعنی دَ شپے آخرنئ حصه کښے چه اُووینی هغه درست وی ځکه چه دا یوه مقرّبه فرښته ده دَ لوح محفوظ نه ئے خلکو ته ښائی، دَ دے وجه نه دَ دے تاویل درست او صحیح وی۔

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ شپے په اوله حصه کښے خوب اُووینی دَ هغے تاویل تر پنځو کالو پورے وی او که دَ نیمے شپے په وخت کښے اُوګوری نو دَ هغے تعبیر تر پنځو میاشتو پورے وی او دَ سحر په وخت کښے چه اُوګوری نو دَ هغے تعبیر په لسو ورځو کښے ښکاره کیږی۔

خُلاصه دا چه څومره خوب سحر ته نزدے وی نو دَ هغے تعبیر درست زر او لنډ وخت کښے ښکاره کیږی۔

## اتم فصل۔ دَ خوب تعبیر بیانولو دَ پاره دَ علم جفر او فال پیژندل

حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی، هر څوک چه دا غواړی چه دَ خوب تعبیر بیان کړی یعنی تعبیر ویستونکی ته پکار دی، دَ علم جفر او فال پیژندل کوم چه دَ پخوانو استاذانو نه نقل شوی دی۔ اول بایدا تعبیر ویستونکی نه څوک سوال وکړی، دے

دَ نوم تپوس ورنه وکړی. که چرته نوم ئے ښهٔ وی نو نیک او ښهٔ تعبیر دِے ورته او یاسی لکه محمد، احمد، حُسین، فضل، سهیل، بشیر، حبیب، محبوب او نور هغه نومونه چه دَ دے سره مشابهت لری۔ دا دلیل دَ بهتر والی او خوشحالئ دے چه لیدلے وی۔ او که چرته نوم ئے ښهٔ نهٔ وی او دَ مخالف وی، دلیل ئے دَ غم او دَ بدئ وی، کله یو سائل دَ خوب تعبیر تپوس وکړی او دَ تعبیر بیانوونکی په وړاندِے هغه وخت آس یا اوښ یا خروی نو پوهه دِے شی چه دَ دهٔ خوب به نیک او ښهٔ وی او خوب لیدونکے به سفر کوی خاص طور سره چه دَ دهٔ په وړاندے آس یا اُوښ تیر شی او دا ئے پکښے وی۔ دَ الله تعالیٰ کلام او بیان دے (وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ط) ترجمه:۔ آس، قچرا و خر ستاسو سورلئ او زینت دَ پاره دی۔

جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه یو سړی دَ حضرت عبدالله ابن عباسؓ نه دَ خپل خوب په باره کښے سوال وکړو هغه وخت یو کارغهٔ را غلو او دَ کور په دیوال کیناستو او دوه آوازونه ئے وکړل۔ حضرت عبدالله ابن عباسؓ ورته او فرمائیل چه دا دے دلیل دے چه تاته څهٔ مصیبت رسیدونکے دے۔ په هغه شپه دَ دهٔ کور ته غل راغلو او کورئ ورته سورے کړو، څهٔ چه ئے کور کښے وُو ټول ئے ورنه ویوړل۔

حضرت عبداللهؓ فرمائیلی دی چه ما خپلو دوستانو ته وئیلی دی که چرته دَ ستاسو نه څوک دَ خوب تعبیر تپوس وکړی او دغه وخت کارغهٔ دوه آوازونه وکړی نو دلیل او تعبیر ئے دَ بدئ او دَ نقصان دے او که چرته څلور آوازونه وکړی نو دلیل او تعبیر ئے دَ نیکئ او ښهٔ والی دے او که چرته پنځهٔ آوازونه وکړی نو دَ بدئ دلیل دے او که چرته شپږ آوازونه وکړی، دَ خوب لیدونکی دَ پاره دَ بهترئ دلیل دے۔

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ کارغهٔ طاق آواز دَ نیکئ دلیل دے او جفت آوازونه دَ بدئ دلیل دے۔

امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی چه څوک په دے نیت اُوده شی چه څهٔ خوب او وینم او دَ دے خوب نه نیک او بد احوال زده کړم نو که چرته په خوب کښے چیلئ (بزه) یا دَ چیلئ دَ بچی یا غوا یا آس یا هغه شیان چه دَ دے سره مشابهت لری چه دے ئے غوښه خوری نو دا دَ خوب لیدونکی دَ تباهئ

دلیل دے اوکه چرته بنده دروازه اووینی او بیا ذده څخه خلاصه کړے شی او یا خوله پیدا کړی او وے خوری، نو دا د خوب لیدونکی د پاره د نیکئ دلیل دے۔

## نهم فصل۔ د یاده وتلی او هیر شوی خوب په بیان کښے

امام جعفر صادق رح فرمائیلی دی که چرته څوک خوب اوګوری او بیا ورته هیر شی او تعبیر ویستونکے ورته د خوب بیژندل غواړی، نو د دے دا طریقه ده چه د خوب لیدونکی نه دے د نوم تپوس اوکړی او د هغه د نوم حروف دِ اوشماری او د ابجد و په حساب دِ ورته ۹۰۹ طرح (منفی) کړی او و دِ ګوری چه آخر کښے څومره باقی پاتے شوی دی که چرته نهه باقی پاتے شوے وی، نو دا خوب د فساد دلیل دے چه ده خراب خوب لیدلے دے۔ د الله تعالیٰ کلام دے چه فرمائی (وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ۔ النمل ۴۸) ترجمه:۔ په ښار کښے د نهه کسانو ډله وه چه فساد به ئے کولو او اصلاح به ئے نه کوله۔

اوکه چرته اته باقی پاتے شوی وی نو سفر یا واده کول به ئے لیدلی وی۔ د الله تعالیٰ وینا ده (ثَمَانِيَ حِجَجٍ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ القصص ۲۷) ترجمه:۔ اته کاله دِ ے او که لس کاله دِ ے دا سره پوره کړل نو دا ستاسو طرفه به وی)

اوکه چرته اووه باقی پاتے شوی وی، نو د خوب لیدونکی به لیوان یا سپی لیدلی وی۔ د الله تعالیٰ کلام دے چه (وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ۔ الکهف ۲۲) ترجمه:۔ او وائی چه اووه دی او اتم د دوی سپے دے۔

اوکه چرته شپږ باقی پاتے شوے وی او خوب لیدونکے نیک سړے وی نو دا د دے دلیل دے چه ده په خوب کښے فرښتے او اهل صلاح لیدلی دی او که چرته د خوب لیدونکے بدکاره وی نو دا د دے دلیل دے چه ده به شیطان او اهل فساد لیدلی وی۔ دا د ده په تباهی دلیل دے۔ د الله تعالیٰ ارشاد دے چه: خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ۔ (اعراف ۵۴) ترجمه: پیدا کړی دی اسمانونه په شپږ ورځو کښے او بیا ئے استواء وکړه په عرش باندے۔

اوکه چرته پنځه باقی پاتے شوی وی نو ده خوب کښے اسونه او ویلے لیدلی دی اوکه چرته څلور باقی پاتے شوی وی نو ده په خوب کښے اسمان او ستوری کتلی دی۔ د الله تعالیٰ وینا ده (فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَاءً لِلسَّائِلِينَ۔ حٰم سجده ۱۰)

ترجمه:۔ څلورو ورځو کښې دَ سوال کوونکو دَ پاره برابر دی۔

او که چرې درې باقی پاتې شي نو خوب لیدونکی بېچا ته دَ خپل کار روښان دی. کلام الٰهی دے (مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ) [المجادلة:۷] (دَ دریو سړو سرګوشي څلورم الله تعالیٰ دے۔ بل ځائے الله تعالیٰ فرمائی چه (ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا) [اعراف ۴۱] ترجمه:۔ درې ورځې مګر۔)

او که چرته دوه یا یو باقی پاتې شي نو دا دَ دے دلیل دے چه په دین او دُنیا کښې به نفع وی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے (ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ) [التوبة:۴۰] ترجمه:۔ په دوه کښې دوېم کله چه دواړه په غار کښې وو چه خپل ملګری ته ئے او وئیل مه ویرېږه) دَ دے تعبیر دا دے چه دَ کوم شي نه په ویره کښې وی دَ هغې نه به محفوظ او امن کښې وی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه چا خوب لیدلے وی او بیا ئے هېر کړے وی او تعبیر ویستونکے غواړی ورته چه ورته دَ خوب حال بیان کړی نو سوال کوونکی ته دِ ووائی چه خپل لاس دِ په خپل وجود کښې په یو اندام کېږده نو که په سر ئے لاس کېښودو نو ګنډګی یا غر به ئے لیدلی وی او که په سترګه ئے لاس کېښودو نو دَ ترروو او بوچینه به ئے لیدلی وی۔ او که په پوزه ئے لاس کېښودلو نو دَ غرهٔ لمن به ئے لیدلی وی۔ او که په مخ ئے لاس کېښودلو نو چمن به ئے لیدلے وی۔ او که په غوږ ئے کېخودلو نو چاوډ او غار به ئے لیدلے وی، او که دَ ګیرې په وېښتو ئے لاس کېخودلو نو وابنه به ئے لیدلی وی او که په خیټه ئے لاس ایښے وی نو په خوب کښې به ئے نهر (دَ اوبو لویه ویاله) لیدلے وی، او که په شرمګاه ئے لاس کېخودو، نو شراب خانه یا ورانه زمکه به ئے لیدلے وی، او که په اُوګه ئے لاس کېخودلو، نو محل به ئے لیدلے وی۔ او که په مټ ئے لاس کېخودلو، نو میوه داره وُنه به ئے لیدلی دی۔ او که په ګوتو ئے لاس کېخودلو نو دهٔ دَ ګل خیرو بناخونه او وُنې لیدلے دی۔ او که په زنګون ئے کېخودلو نو دهٔ غونډئ لیدلی دی۔ او که دَ ډکو متیازو په ځائے لاس کېږدی نو دهٔ خزلے او وېران لیدلے دے او که په پنډئ لاس کېږدی نو دهٔ په خوب کښې میوه داره وُنه لیدلے ده۔

خضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، که چرته څوک خوب او ګوری او هېر ئے کړی، نو دَ څلورو حالتونو څخه خالی نه دے۔ (۱) دَ ډېرو ګناهونو په وجه (۲) دَ

مختلفو کار ونو په وجه (۳) دَ ضعف نیت په وجه (۴) دَ طبیعت دَ اختلاف په وجه کله چه دِ ے حالت نه وکرځي نو ضرور به خوبونه هیر شي۔

## لسم فصل ۔ جاهلانو ته دَ خوب تعبیر په بیانولو کښې

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي هوښیارانو ویلي دي چه جاهلانو کم عقلو ته خوب مهٔ بیانوئ او مهٔ ورنه دَ تعبیر سوال کوئ او دا ویناد خلکو صحیح نهٔ ده او غلطه ده چه که چرته دَ جاهل نه تپوس وکړے دَ تعبیر په باره کښې او هغه چه څهٔ تعبیر بیان کړي هم هغه رنګ واقع کیږي داځکه نهٔ واقع کیږي چه دَ خوب نماینده فرښته ده او هغه هیڅکله نهٔ خطا کیږي او څهٔ چه وائي حق وي۔ دَ ناپوهه او جاهل په وینا حق نهٔ باطلیږي۔ او دَ عالم او جاهل منځ کښې ډیر زیات فرق دے۔ الله تعالیٰ فرمائي (قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۝ الزمر ۹) ترجمه :۔ اُووایه چه آیا برابر دي هغه کسان چه پوهیږي او هغه کسان چه نهٔ پوهیږي یعنی عالم او جاهل برابر کیدے نهٔ شي۔ او نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي (لَا يَسْتَوِي الْعَالِمُ وَالْجَاهِلُ) ترجمه :۔ نهٔ دے برابر عالم او جاهل)۔ چونکه دَ خوب ظاهرولو والا فرښته ده چه دَ لوح محفوظ نه ښائي خیر به رسي یا شر به رسي۔ که چرے عالم او جاهل دا اګر نَول غواړي نو کیدے شي به ضرور کیږي نه سِوا دَ قضاء معلق نه چه هغه دَ صدقات او دُعا سره لرے کیږي۔ هیڅکله به و نهٔ کرځي۔

کله چه ملک ریّان (دَ مصر بادشاه) هغه خوب ولیدلو لکه چه الله تعالیٰ فرمائي (قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ ۖ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ ۝) ترجمه :۔ دوئ دوئیل چه دا ګډ وډ خوبونه دي او مونږ دا خوبونو په معنی پوهیدونکي

بادشاه خپل قوم راوبللو او دَ خپل خوب حال تپوس ئے ورځنه وکړو او ورته ئے ووئیل الله تعالیٰ فرمائیلي دي (يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِي فِي رُؤْيَايَ إِن كُنتُمْ لِلرُّؤْيَا تَعْبُرُونَ ۝) ترجمه :۔ اے ځما سردارانو! ما ته فتوی دا کړئ ځما دَ خوب په باره کښې که چرته تاسے ځما دَ خوب تعبیر بیانولے شئ۔)

قوم ئے ورته ووئیل مونږ دَ دے خوب په تعبیر نهٔ پوهیږو۔ بیا ئے حضرت یوسف علیه السلام راوغوښتلو او تعبیر ئے ورته ورکړو او هغه دا سے دوچه دَ اُوُو کالو دَ قحط بیان ورته اوکړو۔ دَ دے نه معلومیږي چه دَ

(۱) یوسف ۴۴ (۲) یوسف ۴۳

ناپوهانو دَ تعبیر نه دَ خوب حق نهٔ باطلیږی۔

## یؤلسم فصل۔ په بیان دَ خوبونو حال او صورت نه معرفت حاصلول

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ خوب دَ وخت په لحاظ وخت، قسم

سره بدلیږی، که چرته څوک دشپے خوب کښے اُوګوری چه په پُل یا په لارهٔ ناست دَے دا دَ دهٔ په بزرګئ دلیل دے۔ او چه څهٔ کار کوی هغه کښے به ورته فائدهٔ ورسیږی او که هم دغه خوب دَ ورځے اُوګوری نو دے به خپلے ښځے ته طلاق ورکړی۔

که چرے ئے دَ شپے په خوب کښے اولیدل چه سپی چرګ نیولے دے، نو دا دَ خبرے دلیل دے چه دَ چاکم عقل سره به ئے کاروبار شروع کیږی او که چرته همدغه خوب دَ ورځے اُوګوری نو مریض به شی۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه حقیقت کښے خوب دَ دین، کسب صنعت او حرفت سره نهٔ ګرځی۔ دَ یو خوب مختلف تاویل عذاب دی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (غُلَّتۡ اَیۡدِیۡهِمۡ وَلُعِنُوۡا بِمَا قَالُوۡا) المائده ۶۴ ترجمه:۔ دَ هغوی لاسونه وتړلے شو او دَ هغوئ دَ خبرو دَ وجه نه په هغوئ لعنت پرے وتلو۔

که چرته دا خوب یو نیک سړی اولیدلو، دا دَ دے خبرے دلیل دے چه دَ ګناهونو او بے کارهٔ کارونو نه به لرے کړے شی او منع به شی۔

دغه شان محمد بن عبدالعزیز په صحیح سند سره عبدالرحمٰن اسلمی نه نه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حضرت ابوبکر صدیق رض او حضرت سلمان فارسیؓ په منځ کښے دوستی قائمه کړه او حضرت سلمانؓ یو خوب اولیدلو هغه ئے حضرت ابوبکر صدیق رض ته بیان کړو، دَ هغے خوب په سبب هغه دَ دهٔ نه جُدا شو۔ حضرت ابوبکر صدیقؓ اوفرمائیل چه تر قیامته پورے ستا دَ سر نه لاس لنړ شو۔ حضرت سلمانؓ دَ دے خوب خبر حضرت نبی کریمؐ ته بیان کړو۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته همدغه شان تعبیر بیان کړو کوم تعبیر چه ابوبکر صدیقؓ بیان کړے وو۔

ابو مسلمؓ دَ عطاء بن خبابؒ نه روایت کوی چه محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی چه څوک په منبر ځان اُوګوری نو اوس که چرته هغه سړے نیک وی، نو شرف او بزرګی به بیا مومی۔ او که هغه سړے بدکاره وی په پهانسی (دار) به شی۔

حدیث الحدیث کښے دی چه احمد بن سعدؒ دَ حضرت ابو عبیدهٔ رض نه روایت

کوی چه یو ے بنځے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو چه داسے خوب م لیدلے چه زما دَ کور دَچهت ستن په ماماته شوه، نونبی علیه السّلام ورته اوفرمائیل چه ستا خاوند به دَ سفر نه راځی په دویم ځل ئے همدغه خوب بیا اولیدلو او دَ ابوبکر صدیق رض نه ئے تپوس وکړو دَ خوب دَ تعبیر په باره کښے، نو ابوبکر صدیق رض ورته اوفرمائیل چه خاوند به دِ مړ شی دواړه خوبونه یو شان وو مګر دَ وخت په مخالفت سره تعبیر مختلف شو.

حضرت ابوحاتم دَ اصمعی نه روایت کوی چه اشعری دَ تعبیر په باره کښے تپوس اوکړو چه ما په خوب کښے اُولیدل چه غنم دَ اوربشو په بدل کښے خرڅوم. حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو چه ته قرآن کریم په شعر بدلوے دَ سړی حالت دَ تبدیلی غنم او اوربشے چه دَ خپل اصل نه بدل شوے که چرته څوک همدا خوب اوګوری نو دَ اصمعی خبره دِ یاده لری.

کرمانی رح فرمائیلی دی چه د سپرلی موسم کښے خوب که څوک اوګوری داتیک خوب دے مګر ډیر وخت روسته به ئے تعبیر ظاهریږی او څوک چه دَ منی په موسم کښے خوب اوګوری نو دَ دے تعبیر به درست نه وی او دَ ګرمی موسم خوب ډیر زر ظاهریږی. دَ دے خبرے دلیل دادے چه یو سړی دَ ابوبکر صدیق رض نه تپوس اوکړو چه ماته دَ یو بے ونے اوّیا پاڼے په شمار راکړے شوے دَه جواب ورکړو چه ته به اوّیا لړګی وهل کیږے بیا هغه سړے په هم دِے هفته کښے اوّیا ځلے اووهلے شو. بیا په دویم کال هم هغه سړی هم هغه دَ اوّیا پاڼو خوب اولیدلو او دَ ابوبکر صدیق رض نه تپوس اوکړو دَ خوب تعبیر په باره کښے، ابوبکر صدیق رض جواب ورکړو چه تاته به اوّیا زره درهمه درکول کیږی هغه سړی سوال وکړو، اے امیرالمؤمنین! تیر کال م همدا خوب لیدلے وو دهغے تعبیر اوّیا لړګی وهل وو او دَ دے تعبیر اوّیا زره درهمه دی تا سے دَ دَ تعبیر د فرق معلومات نبکاره کړی. ابوبکر صدیق رض جواب ورکړو چه تیر کال تا دَ منی په موسم کښے خوب لیدلے وو او سخکال دَ سپرلی موسم دے اُونے په ترقی کښے دی، دَ دے تعبیر همدا دے، بیا هغه خوب لیدونکی اوّیا زره درهمه وموندل.

حضرت دانیال ع فرمائیلی دی چه څوک دَ ورځے دَ اول نه تر نیمے حصے پورے دَ خوب تعبیر تپوس کوی، دَ دے تعبیر په اقبال او نیکی دے او دَ زوال نه روسته شپے پورے دَ شر او فساد دلیل دے او دَ ورځے واوړے (ګلئ) باران دَ

ثمر ختلو او پریوتلو په وخت دَخوب دَ تعبیر سوال نهٔ دے پکار۔

جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، چه په ټولو کښے صحیح او درست هغه خوب دے چه دَ سحر نه دَ ثمر ختلو پورے وی یا دَ ثمر په برابری باندے بښهٔ خوب او رښتینے راځی او دَ خوبونو تعبیرونه دَ اوتو زرغونیدل او دَ میوو پخیدل ښهٔ خوبونه دی او دَ دے تعبیر درست وی. او کوم خوب چه دَ یخنئ په ورځو کښے او وینی دَ دے دَ تعبیر حکم کمزورے وی، په یخنئ کښے باد او باران وی او په پسرلی کښے هر شے خوشحاله وی په هر حال سره هر خوب تعبیر دَ حال مطابق او صورت جدا جدا وی۔

## دولسم[۱۲] فصل. دَخوب تعبیر وییلونکی دَ ادب او شرط په پیژندلو کښے

حضرت دانیال[ؑ] فرمائیلی دی. چه تعبیر بیانونکے دِ باید هوښیار وی او پرهیزگار هم وی، عالِم دی خاموشی پسند او نیک وی او دَ تعبیر ورکولو په وخت دِ حاضر او بیدار وی او دَ سوال کونکی خوب دِ ښهٔ په غور او احتیاط سره واوری او دا دِ معلومه کړی چه سائل بادشاه دے یا رعیت نه بزرګ عالِم دے یا جاهل ازاد دے یا غریب غلام دے یا ښهری مالدار دے یا درویش سړے یا ښځه فارغ دِله ده یا مشغوله ده. په ګرمئ کښے دا خوب لیدلے دے یا په یخنئ کښے. کله چه دَ هر یو خبرے قیاس په عقل سره معلوم کړی لکه څنګه چه استاذان دَ دے علم بیان کوی تعبیر دِ بیان کړی او دَ خپل ځان نه دِ نهٔ وائی۔

ابن سیرینؒ سره دَ دے چه دَ دے علم استاذ وو او بے مثله روزګارئے وو سره د دے چه دَ دومره فضیلت خاوند وو، بیا هم که دَ کوم خوب په تعبیر به پوهه نشو نو خاموش به شو او هیڅ به ئے نهٔ وئیل.

ابو حاتم دَ اسمعیؒ نه روایت کوی او هغه دَ ابوالمقدام نه چه دَ ابن سیرینؒ نه دَ دیرشو نه ترخلویښتو پورے تپوسونه چا اوکړل نو دَ یو تعبیر به ئے بیان کړو او دَ نورو تعبیرونه به ئے نهٔ وئیل دَ دے وجه نه تعبیر بیانونکی ته پکار دی چه اول دِ دَخوب لیدونکی خبره ښهٔ په غور سره واوری او دَ دے په تعبیر کښے ښهٔ سوچ اوفکر وکړی، که خبره سخته وی او معنی ئے صحیح دی او تعبیر برداشت کولے شی، نو هم هغه وخت دِ تعبیر بیان کړی. او که چرے په اصل خوب کښے فضول خبرے وی نو هغه فضول دِ پرېږدی او دَ اصل او حقیقت دِ تعبیر او معنی بیانه کړی. ورځته لوړے او جُدا

